# د
# کتاب‌پرستۍ
# پر ضد

مائوتسه دون

۱۹۳۰



د کتاب پرستۍ پر ضد
لیکوال: مائوتسه‌دون
ژباړونکی او ډیجټال خپرونکی: محسن خپرندویه
بریښنالیک: mohsinpubs@gmail.com
وبلاګ: http://mohsinpubs.blogspot.com
د خپروني نیټه: د ۱۴۰۱ کال د کب میاشت (۲۰۲۳ کال فبروری میاشت)




د محسن خپرندویه د یو شمیر افغان انقلابیانو له لوري جوړه شوه چې د مارکس، انګلس، لنین، ستالین، مائوتسه‌دون او نورو انقلابي او مخکښو لیکوالانو آثارو چاپ او خپرول یې د خپل کار په لومړیتوب کې نیولي دي.

# لړلیک:

# د کتاب پرستۍ پر ضد

مائوتسه دون (د ۱۹۳۰ مې)

## ۱) چا چې تحقیق کړی نه وي، د خبرو حق نلري

تـا په کومی مسـئلې کـې څیړنه کړې نـه ده، نو ته د دې حق له لاسـه ورکـوې، چـې د هغې په اړه وغږیږې. آیا دا ډېـر ظالمانه نه دی؟ نه، په هېـڅ ډول! کله، چې تا د مسـئلې اوسـنۍ وضعې او تیـر تاریخ په هکله څېړلي نه دي، نه پوهیږې، چې حقیقت څه دی، بیا نو ښـکاره ده، چې تـه کله د دې مسـئلې پـه هکله خبرې وکـړې، پرته لـه چټیاتو څخه به بل څه و نه وایې. څرګنده ده، چې څوک په خوشـو خبرو هېڅ سـتونزه حلولای نشي. نو ولې بیا بې انصافي ده، چې له تا څخه په دې برخه کې د خبرو حق اخیسـتل کیږي؟ ډېر ملګري ټوله ورځ په تړلو سـترګو باتې ولي. دا د یوه کمونیست لپاره ننګ دی. څنګه کېدای شي یو کمونیست سـترګې د حقیقـت پـر مخ پټې او د هغـه پر ځای خوله پـه لاپو خلاصه کړي؟

دا نشي کېدای!

داسې تحقیق وکړئ!
هرو مرو تحقیق وکړئ!
چټیات بس کړی!

## ۲) د یوې مسئلې د حل لپاره باید څېړنه وشي

ته یوه ستونزه حلولای نشې؟ نو بنه ده، نو بیایې اوسنۍ وضعه او تاریخ وڅېړه! که ته دا ټول شرایط لکه خپل جیب داسې پېژنې، نو بیا د حل لاره هم موندلای شې. هره پایله هغه وخت لاس ته راځي، چې د یوه حالت څېړل سر ته رسېدلي وي، نه دا چې تازه پیل شوي وي. یوازې یو ناپوه ځانته او یا د نورو سره ګډ سر په درد راولي، چې د مشخصې وضعې له څېړلو څخه پرته «یو متد وموندي» یا «کوم فکر ته ورسېږي». خو باید وویو: هغه به هېڅکله سم فکر ونه کړي، هېڅ معقول فکر به یې په سر کې پیدا نشي. په بل عبارت، دی به یقینا غلط متد خپل کړي او یوې غلطې پایلې ته به ورسېږي.
ډېر څارونکي، ډېر د پارټیزانو رهبران، ډېر مسئولین، کوم چې نوې دنده پیل کړي، چې لا خپلو ټاکل شویو ځایو ته سم رسېدلي نه وي، خوند ورکوي، چې خپل فکر د سیاسي تدابیرو په هکله ګران خرخ کړي او وروسته له دې چې یو څه سرسري او بې ارزښته معلومات یې ترلاسه کړل، په جدیت او د لاسو په خوځولو سره بیانیې ورکوي، له هغه ځایه او دې ځایه څرګندونې کوي، په دې نېوکه کوي، هغه غلط ګڼي. داسې څرګندې ذهني اپلتې ویشتل په رښتیا چې کرکجن دي! له دې سره تاسو یوازې کار خرابولای شي، د پرګنو ملاتړ له لاسه ورکولای شي، د هېڅ

ستونزې حل ځواک نشی لرلای.
د رهبری ملګري، کله چې له یوې سختې ستونزې سره مخ شي، نو تش اســویلي اوباســي او حلولای یې نشي. صبر له لاسه ورکوي او هیله کوي چې بله دنده وروســپارل شــي، ولې چې د دغه کار «ترسره کولو وړتیا نه لري». ډارن کســان دا ډول خبرې کوي. پاځی او په دواړو پښــو په لاره روان شـئ، د خپلې دندې هرې برخې ته ســر ووهئ او د (کنفوســیوس پــه څیــر) «د هر څــه په هکله وپوښــتئ»[1]. بیا نو، که څومــره هم لږ وړ وی، کولی شــی، ســتونزې حلې کړی. تر څو مو چې ګام اوچت کړې نه وي، ستاســو ککرې به تشــې وي. یوازې وروســته له دې چې له بهر نه ببرته راســتانه شــی، نو ککرې به مو تشــې نه وي، د ستونزو د حل لپاره بــه مو ټول ضروري وســایل له ځانه ســره راوړي وي. او په دې ډول بیا ستونزې هم حلېدلې شي. آیا انسان مجبور دی، چې بهر ووځي؟ حتمي نده. تاســو کولای شــئ، هغه کســان، چې د وضعې ســره بلد دي، د کار یوې غونډې لپاره راټول کړئ، چې په هغې کې ســختې ستونزې وڅېړل شي، د هغو «سرچېنه» څرګنده شي او «اوسنی وضعه» یې ښکاره شي، ستاسو سختې ستونزې به بیا په آسانتیا سره خپل حل ومومي.
د یوې ســتونزې څېړل «نهه میاشــتې امیندواری ته تګ» په مانا ده؛ د ســتونزې حل «په یوې ورځې کې د زېږېدو» په مانا دی. د ســتونزې په څېړلو کې د هغې حل پروت دی.

۱ -د کنفوسیوس له «ویناؤو» څخه، ۳مه برخه، «پایی» اصلي جمله په دې ډول ده: «کنفوسیوس د پادشاه آهنیا معبد ته ننوزي او د هر څه په هکله پوښتنې کوي.»

## ۳) د کتاب پرستۍ پر ضد مبارزه وکړئ

هغه څه چې په کتاب کې راغلي، هغه تل سم دي – تر نن ورځې پورې په کلتوري لحاظ وروسته پاتې چینایي بزګران داسې فکر کوي. چا به سوچ کړې وای، چې داسې کمونیستان هم شته، چې د ګوند په منځ کې په بحثونو کې تل وایي: «راوښایه چې په کوم کتاب کې داسې لیکلي دي؟» کله چې موږ وایوو، چې د پورتنیو ارګانونو لارښوونې سمې دي، دا د دې لپاره نه ده، چې هغه له «پورته ارګانونو» څخه راځي، بلکه په دې دلیل، چې «د هغو لارښونو محتوا» د مبارزې له عیني او ذهني شرایطو سره سمون لري او د مبارزې ضرورت څرګندوي. د لارښوونو په ړندو سترګو پلي کول، پرته له دې چې د حقیقت په رڼا کې بحث پرې وکړو او ویې څېړو، شکلي چلند دی، چې د ساده «انضباط» پر بنسټ ولاړ دی، له همدې کبله کېدی هم شي، غلط وي. که چېرې د ګوند تکتیکي کرښلارې لا هم د پرګنو په منځ کې ټینګ بنسټ نه وي موندلی، نو دا په دې پورې اړه لري، چې فرمالیسم لا هم په سرونو کې جرړې غزولي. د رهبرۍ لارښووونې په ړانده توګه پلي کول او داسې ښودل، چې ګواکې څېړلې مو دي، هېڅ مخالفت نه ښودل، د دې مانا نلري، چې په رښتیا سره مو منلي نه دي. بر عکس: دا د لارښوونو د نه پلي کولو او د هغو د سبوتاژ یو ماهرانه متد دی.

په ټولنیز علمي څېړنو کې هم د کتاب پرستۍ متد خورا خطرناک دی. هو، هغه کېدای شي، د دې لامل وګرځي، چې انسان انقلاب ضد لارې کې ګام اوچت کړي. د دې ښکاره ثبوت دا دی، چې په چین کې ډېرو هغو کمونیستانو، چې کله یې ځانونه په ټولنیزو څېړنو کې پر کتابي معلوماتو محدود کړي وو، ډلې ډلې په ضد انقلابیانو بدل شول. کله چې

موږ وايوو، چې مارکسيزم سم دی، نو د دې مانا مطلقن دا نه ده، چې مارکس به په هر څه پوه سړی ؤو، بلکه موخه مو داده، چې د ده تيوري زموږ په عمل او زموږ په مبارزه کې خپل صحت ثابت کړ. موږ د خپلې مبارزې لپاره مارکسيزم ته اړتيا لرو. موږ دا تيوري په خوښۍ سره منلې، مګر يوه ذره هم فکر نه کوو، چې هغې ته د «تقدس» او يا د معجزې په سترګه وګورو. ډېر انسانان، چې «مارکسيستي کتابونه» يې لوستلي وو، انقلاب ته په خاينانو بدل شول؛ خو کارګرانو، چې بيسواده هم دي، اکثرا په مارکسيزم باندې ښه عمل کړی. مارکسيستي «کتابونه» بايد ولوستل شي، خو دا بايد زموږ د هېواد د مشخصې وضعې سره په اړوند کې واوسي. موږ «کتابونو» ته اړه لرو، خو د واقعي وضعې څخه د جلاشوې کتاب پرستۍ ټغر بايد ټول کړو.
څرنګه کولای شو کتاب پرستي لېرې وغورځوو؟ يوازېنۍ لار د واقعي وضعې او حالت څېړل دي.

۴) د طبقاتي ځواک د واقعي وضعيت له څېړلو پرته، بې‌شکه مونږ آيډياليستي موندنو ته رسېږو او آيډياليستي لارښوونې به وکړو چې پايله به يې اپورتونيزم يا پوچيزم وي.

کله چې انسان مشخصې څېړنې له پامه وغورځوي، نو بيا د طبقاتو آيډياليستي ټاکنو او د کار آيډياليستي رهبرۍ سره مخ کېږي، چې پايله به يې اوپورتونيسم او يا پوچيسم وي. ته دا پايله اخيستل نه منې؟ واقعيتونه به دې دې ته اړ کړي، چې ويې منې. کله چې ته يو ځل ټاکلې څېړنې له پامه وغورځوې، آيا د سياسي وضعی اټکل او د مبارزاتی دندو رهبري به پوچه او آيډياليستي بڼه ونه مومي؟ د سياسي وضعې پوچه او

آيډياليستي اټکل او د کار همدا ډوله رهبري کول به آيا اوپورتونيستي او پوچيستي پايله ونلري؟ ښکاره ده، چې لري يې. د دې لامل دا نه دي، چې انسان د عمل نه مخکې د دقيق پلان جوړول له ياده اېستلي وي، هغه څه چې د سره پوځ په پارتيزاني څانګه کې ډيرى وخت پېښ شوي دي، بلکه د دې لامل دا دى، چې انسان د پلان تر جوړولو مخکې ټولنيز واقعي اړوندونه کره څېړلي نه وي. داسې افسران شته، چې د لي کوى[2] په دود هغو سرتېرو ته، چې خطاوې يې کړې دي، په پټو سترګو او ناپوهې سره سخته سزا ورکوي. د هغې په پايله کې سرتېري خپلو تېروتنو ته نه متوجه کېږي، ګڼ شمېر شخړې رامنځ ته کېږي او د رهبرۍ کسان خپل حيثيت ګرد له لاسه ورکوي. آيا انسان له داسې چلند سره اکثراً په سره پوځ کې نه مخامخ کېږي؟

د پرګنو د جلبولو، د غليم د ماتولو دنده انسان يوازې هغه وخت سر ته رسولاى شي، چې آيډياليستي ذهن لېرې وغورځوي او د اوپورتونيزم او پوچيزم هر راز تېروتنو څخه ډډه وکړي. آيډياليستي ذهن انسان وروسته له دې چې د مشخصو څېړنو لپاره يې ډېر زيار اېستلى وي، لېرې غورځولاى شي.

## ۵) د ټولنيزو ـ اقتصاي څېړنو موخه دا ده، چې د طبقاتو سم اټکل تر لاسه کړو او وروسته بيا د مبارزې سم تکتيک و ټاکو

د ټولنېزو ـ اقتصادي څېړنو سرته رسول ولې ضروري دي؟ موږ ځواب

---

۲ - لي کوى د «ډند کېسې»، د مشهور چينايي رمان اتل دى، چې د شمالي سونګ ـ سلسلې په وروستيو وختو کې د بزګرانو يو پاڅون انځوروي. لي کوى له يوې خوا ساده و سپين سړى ؤو، چې د بزګرانو ارمان ته بشپړ وفادار ؤو، خو له بله پلوه په خپلو دندو کې خورا تريخ او بې نزاکته ؤو.

ورکوو: ولې چې موږ د طبقاتو سم اټکل تر لاسه کول او بیا په همدې توګه د مبارزې لپاره د سم تکتیک ټاکل غواړو. له همدې کبله زموږ د ټولنیزو ـ اقتصادي څېړنو موخه خورې او ځانګړې پدیدې نه، بلکه د ټولنې بېلابېلې طبقې دي. که څه هم دا موکه د سره پوځ ۴م لښکر دا راز څېړنیز کار ته پاملرنه کړې،[3] خو بیا هم له دوی څخه ډېري له غلطو متدونو څخه کار اخلي. د هغې په پایله کې د دوی د څېړنو پایلې د یوې هتې ورځني یادښتونو ته ورته وي، یا هغو نویو شیانو ته پاته کېږي چې یو کلیوال بزګر یې په ښارکې د سړک په سر ترلاسه کوي او یا د ښار هغه انځور په شانتې وي، چې یو چا د لوړ غره[4] له سره لېدلی وي. دا راز څېړنې خورا بې ارزښته دي، د هغو په مرسته موږ خپلې موخې ته نشو رسېدلای. زموږ اصلي موخه دا ده، چې د ټولنې د ټولو طبقاتو په ټولنیزې او اقتصادي وضعې باندې پوه شو. زموږ د څېړنو پایله باید د بېلابېلو طبقو د اوسنۍ وضعې او تاریخ لوړې او ژورې، وده او نسکورتیا څرګنده کړي. د بېلګې په توګه، کله چې موږ د بزګرانو ټولنیزه وضعه څېړو، بیا نو نه غواړو چې یوازې په دې پوه شو، چې بزګران د شتمنۍ او

۳ - ملګری مائوتسه دون تل څېړونکي کار ته لویه پاملرنه کوله او د ټولنیزو اړوندونو څېړل د رهبرۍ لپاره لمړۍ درجه دنده او د سیاسی پرېکړو لپاره بنسټ شمېري. د ملګري مائوتسه دون په وړاندیز څېړنیز کار د سره پوځ په ۴م لښکر کې پراخیتا وموندله. ملګری مائوتسه دون په همدې توګه ټولنیزې څېړنې د کار د قاعدو برخه وګرځوله. د سره پوځ سیاسي څانګې یو مشرح پوښتنلیک جوړ کړ، چې په هغه کې د پرګنو د مبارزې وضعه، د مرتجعینو وضعه، د اقتصادی ژوند حالت او د بېلابېلو زراعتي طبقاتو د زمکې خاوندانو اړوندونه او داسې نور لیکل شوي وو. هر ځلې، کله چې سور پوځ یوې سیمې ته رسېدلو، هغه ځان د سیمې له طبقاتي اړوندونو سره ځان آشنا کولو او د هغه پر بنسټ یې د پرګنو د ضروریاتو سره سمې د حل لارې ټاکلې.

۴ - له «غره» څخه دلته د کیانګسي او هونان ولایتونو په سرحد کې د جینګنګ سیمه او له «سمې» نه په جنوبي کیانګسي او لویدیز فوتین کې اواره ځمکه مقصد دی. د ۱۹۲۹م په جنورۍ کې د سره پوځ ۴م لښکر، د ملګري مائوتسه دون په لارښوونه، له جینګنګ غره نه د جنوبي کیانګسي او لویدیز فوکین په لور مارش وکړ، چېرته چې دوی د دوو لویو انقلابي اډو بنسټ کېښوده.

اجارې په لحاظ په کومو ګروپونو ویشــل کېږي، یانې پوه شــو کوم شمېر د خپلې زمکې خاوندان، کوم شمېر نیمایې خاوندان او کوم شمېر اجاره لرونکــي دي، بلکه موږ غواړو، چې د دوی په طبقاتي او قشــري واټنونو باندې پوه شــو، په دې توګه د شــتمنو، منځنیو او بې وزلو بزګرو شمېر مالوم کړو. کله چې موږ د سوداګرو ټولنېزه وضعه څېړو، نو نه غواړو چې یوازې د ځانګې پر بنســټ د دوی په ګروپونو باندې په ویشیدلو پوه شو، یانې په دې پوه شــو، چې کوم شــمېر سوداګران د غلې، کالیو، درملو او داسې نورو ځانګو په سوداګرۍ بوخت دي، بلکه تر هر څه وړاندې غواړو چې څرګنده کړو، چې کوم شمېر له دوی څخه واړه، کوم شمېر منځني او کوم شمېر لوی سوداګران دي. موږ نه یوازې د هرې ځانګې د وضعې پــه هکلــه، بلکه مخکې له هر څه د هرې ځانګې ځانګړو طبقاتي اړیکو په هکلــه غــواړو څېړنې وکړو. موږ نه غواړو یوازې د متقابلې اړیکې د ځانګو پــه منــځ کې وڅېړو، بلکه له هر څه مخکې غــواړو، چې متقابلې اړیکې د طبقاتــو پــه منځ کې وڅېړو. اصلي متد، چې موږ پــه دې اړوند کاروو، د بېلابېلو ټولنیزو طبقاتو د جوړښــت څرګندول دي، او وورســتۍ موخه، چې موږ یې په دې توګه لاس ته راوړل غواړو، هغه د مختلفو طبقاتو تر منځ د متقابله اړیکو پېـژندل او د طبقاتو سـم تخمینول دي، تر څو بیا موږ د مبارزې ســم تکتیک جوړ کړای شــو، چې کومې طبقې د انقلاب مرکــزي ځواک جــوړوي، د کومو طبقــو باید ملاتړ ترلاســه کړو، کومې طبقې باید راوپرځوو. زموږ موخه یوازې او یوازې په دې کې پرته ده.

هغــه ټولنیــزې طبقــې، چې موږ یې باید پــه خپلو څېړنو کې په پام کې ونیسو؟ لاندېنې طبقې دي:

صنعتي پرولتاریا

دلاسي کارګرانو برخه

زراعتی کارګران
بې وزلي بزګران
ښاري بې وزلي
لومپن پرولتاریا
لاسي کارګران
واړه سوداګران
منځني بزګران
شتمن بزګران
فیوډالان
سوداګره بورژوازي
صنعتی بورژوازي

په خپلو څېړنو کې موږ باید د دې طبقاتو (په همدې توګه قشرونو) وضعی ته پاملرنه وکړو. زموږ د اوسني کار په سیمه کې صنعتي پرولتاریا او صنعتي بورژوازي نشته، په دې حال کې چې له پاتې طبقو او قشرونو سره دلته تل مخامخ کېږو. زموږ د مبارزې تکتیک پر دې بې شمېرو طبقو او قشرونو پورې اړه لري.

هغه څېړنې چې موږ پخوا ترسره کړې وې، یوه بله لویه ستونزه څرګندوي: موږ خپله پاملرنه په یو اړخیزه توګه کلیو ته اړولې وه او ښارونه مو له پامه غورځولي وو. د هغه په پایله کې زموږ غوره شوی تکتیک د ښاري بېوزلو او سوداګرې بورژوازۍ په هکله ډېرو ته له سره تر پایه پورې ناروښانه ؤو. د مبارزې په ودې سره موږ ځان موظف ولېده، چې له غره نه اوارې ته رابښکته شو . موږ جسماً غر لا پخوا خوشې کړی، خو فکراً لا هم هلته پاس پاته شوي یو. موږ باید کلي وپېژنو، او ښار هم په همدې توګه، که نه موږ به د انقلابي مبارزې غوښتنو ته سم ځواب ونلرو.

## ۶) په چین کې د انقلابي مبارزې برى په دې پورې اړه لري، چې زموږ ملګري چينې شرايط وپيژني

زموږ د مبارزې موخه د ديموکراتيک انقلاب څخه سوسياليستي انقلاب ته تېرېدنه ده. لمړی ګام زموږ د دندې په سر ته رسولو کې دا دی، چې ديموکراتيک انقلاب بايد بشپړ کړو، هغه هم په دې توګه، چې د کارګرې طبقې اکثريت ځان ته جلب کړو، د بزګرو او ښاري بېوزلو پرګنې په خوځښت راولو، فيوډاله طبقه رانسکوره، امپرياليزم مات کړو او ګومينډان رژيم راوپرځوو. د دغې مبارزې له ودې څخه دا دنده راپورته کېږي، چې سمدستي ورپسې سوسياليستي انقلاب ترسره کړو. د دې درنې انقلابي دندې تر سره کول څه ساده او آسانه کار نه دی، برى له هر ليدلوري څخه په دې پورې تړلی، چې د پرولتاريا سياسي ګوند د مبارزې سم او پرېکړنده تکتيک ولري. که چېرې د هغه د مبارزې تکتيک غلط يا سست او لړزان وي، نو انقلاب به له موقتي ماتې څخه ونه ژغورل شي. انسان بايد له ياده ونه باسي، چې د بورژوازۍ سياسي ګوند هم ورځ په ورځ د خپلې مبارزې د تکتيک په هکله بحث کوي، د دې په هکله، چې څنګه د رفورميستي افکارو اغېزه د کارګرې طبقې په منځ کې خپره کړي، تر څو دوی وغولوي او د کمونيست ګوند له رهبرۍ څخه يې راوباسي، څنګه شتمن بزګران دې ته وهخوي، چې د بې وزلو بزګرانو پاخون وټکوي، څنګه بايد بانډونو ته سازمان ورکړي، چې هغوی د انقلاب مخنيوی وکړي، او داسې نور. په دې موکه کې، چې په طبقاتي مبارزې کې کلکې شخړې ورځ په ورځ رانږدې کېږي، اړ يو پرولتاريا، که چېرې غواړي بری ومومي، پر دې باور ولري، چې د هغه

د ګونـد – د کمونیسـت ګوند – د مبارزې تکتیک سـم او پرېکنده دی. د کمونیسـت ګوند د مبارزې یو سـم او نه لړزېدونکی تکتیک هېڅکله د یو څو کسـانو له خوا په شـنه مېز باندې جوړېدی نه شـي؛ هغه یوازې د پرګنـو د مبارزې په بهیر کې رامنځ ته کېدای شـي، په دې توګه یوازې د عملي تجربو څخه راوتلای شـي. له همدې کبله موږ باید تل د ټولنې د وضعې په اړه پېژندګلوي ولرو، هر وخت مشخصې څېړنې سر ته ورسوو. هغـه ملګـري، چې متحجـر، محافظه کار، فورمالیسـت او بـې ځایه – خوښـباوري دي، داسې فکر کوي، چې د مبارزې اوسنی تکتیک تر ټولو ښه تکتیک دی، د ګوند د شپږمې کنګرې[5] په هکله «کتاب» په خپرېدو سره برى د تل لپاره تضمین شو او دا چې انسان یوازې د یوه ټاکل شوي متد پر بنسټ باید چلند وکړي، تر څو تل برى ومومي. د فکر داسې یوه لار بشپړه غلطه ده، د کمونیستي آیډیالوژیکي کړنلارې سره، چې د هغې پر بنسـټ انسـان باید د مبـارزې له لارې نوې وضعه جـوړه کړي، هېڅ راز ګډه ښه نه لري، هغه پرله پسـې محافظه کاره کړنلاره ده. که چېرې انسان دا محافظه کاره کړنلاره بشپړه خوشې نه کړي، انقلاب ته به لوی تاوانونه ورسـوي او په همدې توګه د اړوندو ملګرو په ضرر به هم تمامه شي. ښکاره ده، چې په سره پوځ کې ځیني ملګري شته، پرته له دې چې ځان په جزیاتو کې ډوب کړي، له اوسـني حالت څخه رضایت څرګندوي او په بې ځایه خوښ باورۍ سره دا غلط نظر، چې «پرولتاره نو همداسې دی»، تبلیغـوي، ټوله ورځ خېټه ډکوي او پـه خپلو دفترونو کې چرتونه

---

۵ - د «کتاب» څخه مقصد د ۱۹۲۹م کال د جولاى په میاشت کې د چین د کمونیست ګوند د ۶مې کنګرې هغه پرېکړې دي، چې په هغه کې سیاسي پرېکړې، د بزګرانو او د ځمکو د پوښتنې په هکله پرېکړې، د دولتي ځواک د جوړولو په هکله پرېکړې شاملې وې. دغه اسناد وروسته بیا د ۱۹۲۹م کال په پیل کې د سره پوځ د ۴م لښکر د جبهې کمیسیون له خوا راټولې او د یوې جزوې په توګه د پوځ او د ګوند سیمه ایز سازمان په منځ کې وویشل شوې.

وهي، ځان له ځایه نه خوځوي، تر څو دباندې د پرګنو منځ ته ولاړ شي او یو ځل لاس په څېړنو پورې کړي. دوی تل پخواني چټیات تکراروي، چې خلک له هغو څخه بېزاره دي. موږ دې ملګرو ته د ویښېدو ناره کوو:

ژر مو محافظه کار فکر ته د پای ټکې کېږدی!

د هغه پر ځای د کمونیستانو پرمخ تللي او مبارز فکرونه خپل کړی!

د مبارزې منځ ته ولاړ شی!

د پرګنو منځ ته ولاړ شی او مشخصې څېړنې تر سره کړی!

## ۷) د څېړنو تکتیک

۱ – غونډې راوغواړئ، تر څو د بحث په بڼه څېړنې تر سره کړی. یوازې داسې کېدای شي، انسان حقیقت ته نږدې شي او د هغې سره مطابقې پایلې ترلاسه کړي. که انسان د هغه متد پر بنسټ مخکې لاړ شي، چې یوازې یو کس د خپلو تجربو په دلیل وغږېږي، پرته له دې چې غونډې راوبلي او بې له دې چې ستونزې د مباحثې له لارې وڅېړي، نو بیا په سادګۍ سره اشتباه کوي. که چېرې تاسو د بنسټیزو ستونزو د مطرح کولو پر ځای ستونزې د تصادف او خوښې پر بنسټ مطرح کړي، نو دا بیا داسې یوه لاره ده، چې تاسو سمې پایلې ته نشي رسولای.

۲ – کوم کسان باید د راټول شویو فاکتونو وړاندې کولو غونډو کې برخه واخلي؟

هغه کسان باید غونډې ته راشي، چې هغو ته ټولنیز او اقتصادی شرایط دقیق څرګند وي. د عمر له پلوه زاړه کسان په ډېره بڼه توګه وړ دي، ولې

چې دوی نه یوازې د بډایې تجربې خزانه لري او نه یوازې اوسنۍ وضعه پېژني، بلکه په لاسل او اغېزو هم پوهېږي، د مبارزې د تجربې خاونده ځوان انسانان مو هم پکار دي، ولې چې دوی له آیډیالوژیک پلوه پرمخ تللي دي او دقیق لید لري. د کسب په لحاظ کارګرانو ته او همدا راز بزګرانو ته، سوداګرو او روښان فکرانو ته، هو د دغو په منځ کې مسلکي سرتېرو او لمپنانو ته هم اړه لرو. څرګنده ده، چې کله د یوې مشخصې موضوع په هکله څېړنه کېږي، د هغو کسانو برخه اخیستل په غونډه کې، چې د موضوع په هکله معلومات نلري، اضافي وي. د بېلګې په توګه د سوداګرۍ په هکله څېړنو کې د کارګرانو، بزګرانو یا د محصلانو لپاره د ګډون ضرورت نشته.

۳– د کار په غونډو کې آیا د ګڼ او که لږشمېر ګډون کوونکو برخه اخیستل امتیاز لري؟

دا د غونډې د دایروونکي په ځواکمنۍ پورې اړه لري. څوک چې ځواکمن وي، کولای شي داسې یوه غونډه رهبري کړي، چې هغې ته یو او یا دو درجنه کسان یې رابللي وي. په یوه غونډه د ډېرو خلکو ګډون خپلې ښېګڼې لري: تاسو کولای شي د احصایوي څېړنو په اړوندو سمو پایلو ته ورسېږئ(د بېلګې په توګه پر دې پوهېدل، چې د بېوزلو بزګرانو شمېر د ټولو بزګرانو د شمېر په پرتله په سلو کې څو دی) او د پرېکړو په کولو کې (د بېلګې په توګه دغه پرېکړه، چې د زمکې ویشل په مساوي او که په توپیربزه توګه مناسب دي). ښکاره ده، چې د ډېرو کسانو شتون خپلې ستونزې هم لري: یو مدیر، چې د داسې غونډو د رهبرۍ ځواکمني نه لري، نشي کولای د داسې غونډو منظم بهیر تضمین کړي. دا چې لږ یا ډېر کسان په غونډه کې ګډون ولري، بالاخره د مدیر په ځواکمنۍ پورې اړه لري. خو لږ تر لږه درې ګډون‌کوونکي باید موجود وي، کنه تاسو

محدود او یوا ړخیز معلومات ترلاسه کوئ، چې د واقعیت سره به سمون ونه لري.

۴ – د څېړنیزې جلسې پر مخ وړلو لپاره باید کره کرښې وټاکئ

لمړی باید مشـروح پروګرام جوړ شـي، تر څو مدیر ټکي په ټکي پوښتنې مطرح کړي او ګډون کوونکي یې ځوابونه وویل شي. هغه څه، چې روښانه نـه وي او یا شـکمن وي، څرګندېږي. د «څېړنو پروګـرام» نه یوازې د موضـوع پـه هکله عام ټکي بایـد راونغاړي، بلکه د هغې په غړیو ویشـل شـوو برخو باندې هم باید ټکي ولري. که د بېلګې په توګه د «سوداګرۍ مسـئله» د څېړنو موضـوع وي، نو بیا «ټوکر»، «غلـه»، «ګد مالونه» او د «درملو سـوداګري» اصلي ټکـي جوړوي، چې په هغه کې د «ټوکرو سـوداګري» خپله بیا د «مالوچو ماشـیني مالونو»، د «مالوچو لاسـي اوبدل شویو مالونو» او د «وربښمنو ټوکرو» په څانګو ویشل کیږي.

۵ – په څېړنو کې باید شخصاً برخه واخیستل شي.

د یوې ولسوالۍ له مشر نه نېولې د ټول ایالت تر مشره پورې، د ټولي مشر نه نېولې تر لوی قومندانه پورې، د یو بنسټیز سازمان له سکرټره نېولې د ګوند تر عمومي سکرټره پورې – د کار د رهبرۍ لپاره ټول مسئول کسان باید شـخصاً د ټولنېزو ـ اقتصادي څېړنو په عمل کې بوخت شي او نباید یوازې په لیکل شـویو رپوټونو قناعت وکړي؛ ولې چې شـخصي څېړنې او لیکل شوي رپوټونه دو توپیرلرونکي شیان دي.

۶ – مسایل باید بنسټیز وڅېړل شي.

څوک چې د لومړي ځل لپاره د څېړنیز کار سـره بوختېږي، اړ دی، چې په ژوره توګه د شـیانو بنسـټ ته ورسـېږي، دا په دې مانا ده، چې ځان د یـوې ټاکل شـوې سـیمې (د بېلګې په توګـه یوه کلي او یا ښـار) او یا یوې ټاکل شـوې پوښـتنې (د بېلګې په توګه د غلې سـتونزې، د کرنۍ

ســتونزې) له ټولو اجزاؤ ســره بلد کړي. کله چې تاسو يوه سيمه او يا يوه پوښتنه په بنسټيزه توګه وپېژندله، نو بيا بله سيمه او يا پوښتنه په آسانۍ سره څېړلای شئ.

۷ – خپله بايد يادداښت وليکئ.
په څېړنو کې يوازې دا اړينه نه ده، چې تاسـو يې په خپله رياســت وکړئ او پـه غونډه کې ګډون کوونکي پرې نږدي، چې د غونډې له موضوع نه ووځي؛ بلکه تاســو بايد په خپله يادداښــت وليکئ او د څېړنو پايلې ثبت کړئ. داسې نشي کېدی، چې بل څوک دې ستاسو لپاره دا کار وکړي.

